# ډالۍ

## د اروښاد اسحاق ننګيال

# شعرونو ټولګه

کابل ۱۳۶۳ کال

د کورنیو چارو وزارت د سیاسي چارو لوي ریاست څارندوي مجلې اداره

د انټرنیټ په مخ اوډنکې سمسور حبیبي

# د سريزې پر ځای

شعر او شاعري د ټولنيز و پيښو دانعکس غوره او مهمه وسيله ده. داسې وسيله چې کولای شي د پيښو او پديدو ما هيت په ښکلو الفاظو او کلماتو بيان او د هغو واقعې تصوير په هنرې ډول روښانه کړي.

په داسې حال کې چې ټولنيزژوند او د ټولنې واقعيات د هنرې اثارو د توليد اصلې سر چينه ده خو هنر پخپله د خپل کيفيت له نظره چې د طبيعت، ټولنې او انسانې تفکر د ژورو ځيرنو له لارې پيد کيږي د ټولنې په بدلون او اوښتون کې بې اغيزې نه دي. د شاعر فکر او احساس عوا طف او انديښنې د پيښو دانعکاس ښکلې هينداره ده. خو دغه هينداره د شاعر دټولنيز دريځ سره ژور ارتباط پيدا کوي. کله کله د شاعر احساس او افکار دپديدو طبيعې رنګ، ښکلا، ښايست او جمال د عيشونو او بدمستيو د ستاينې او بيان وسيله ګرځې. مګر کله بيا د ټولنې رنځ او درد، ستونزې او کړاو وونه او په لسګونو خوا شينې کوونکې پيښې د شاعر د عواطفو په هينداره کې انعکاس مومې.

زموږ ټولنه چې د ثور انقلاب په بريا ليتوب او د هغه په پر مختګ سره ورځ په ورځ درښايې لاره پرا نيزي، ښکاره ده چې زموږ د شعر او هنر، شاعر او هنرمند نړې د دغه ژوند بځښونکې انقلاب دارما نو نو او دانقلاب دلارې روښانه مثالونه دي. زموږ د ټولنې په اوسنيو شرايطو کې چې دبا دارې او ستاينې وخت او زمانه تيره ده او د رنځيدلې انسان دبريا ليتوبونو غږ او ددوې هځنده کاروان دار تجاع او امپر ياليزم د توطيو او د سايسو سره سره دنوي ژوندد لوړو پړا وونو په لور د رومې زموږ شاعران ددغه پر مختلونکې کاروان غوره تر جمانان او د هغوې احساسات او عوا طف دنوي ژوندو پلوشو منعکس کوونکې دي. دهيواد د مسلحو قواوو په تيره بيا د رندوې نه ليکو سره د داسې شاعرانو پيوستون او د دوي درزمې او حماسې آنارو منځته روړل زموږ داو سنيو قهرمانو سر تيرو، ساتنمنا نو افسرانو او نور ومنسو بينو د هځولوله پاره مهمه انګيزه ده. ددوې رزمې او حماسې آثار کولاې شي تاودو مور چلونو ته لازيات شور او ځوږ و بخښې او هغه انقلابې مينې ته چې زموږ د زړه ورو او قهرمانو سر تيرو او افسرانو په وجود کې جريان لرې لا شور او قوت ورکړي.

د ((ډالۍ)) اثر هم د داسې آثارو له جملې څخه دي. موږ په داسې حال کې چې ددې شاعر اثر او احساس ستا يو دنورو ټولو هغو شاعرانو څخه چې د دوي قلمونه دانقلاب دارما نونو په دفاع کې قرار لرې، هيله من يو چې دانقلا بې رزم په ډګر کې زموږ د سر بازانو ساتنمنا نو او افسرانو غږ پورته او په خپلو آثارو کې د هغوې حماسې رهبرې کړي. مينه او درنښت

د څاندوې د نشراتو اداره

# سباوون

مونږ له تیارو زړو نه راکاږو سباوون پسې ځو
وریځې په ستورو ولو لمره ستا لټون پسې ځو
د زړو ډیوې په لاس کې خیژو آسماني څوکو ته
د شپول له دام نه د بندي سپوږمۍ خلاصون پسې ځو
مونږ عاشقان یو په غوټیو مین زړو نه لرو
د اغزو څوکو باندې خیرې زړه ګلګون پسې ځو
لیلا لیلا ناري وهو پسې صحرا لټو
مونږ د مجنون ملګري ګوري چې مجنون پسې ځو
وینو: رابلې شپې، مشال شپې، څراغو نه مو شپې
تکل مو کړی تورو شپو کې نوي یون پسې ځو
څو چې راټول یې نه کړو غونډ یې نه کړو یو یې نه کړو
مونږ د دې تیتو خورو خلکو پیوستون پسې ځو
ملګرو پاڅې چې سرو نو سره لوبې پیل کړو
راځې راځې چې یو پاڅون او اوښتون پسې ځو

کابل ۱۲ـ۳ـ۱۲۵۴

# د وينولار

ځليږي هره خوا کې مو د وينو مشالونه
دا سره توغونه ګوري د شهيدو بيرغونه

دې سرو لارو ته ګوري چې په وينو مو وينځلي
منزل د ژوندانه ته مو ټاکلي نښانونه

د زړه وينې به ښخو يو قدم به پرشانه ځو
د سر په زور به لارې جوړ وو په سماو غرونه

سرونو سره لوبو داورونو سين کې لامبو
د وينو په لار ځو چې ځو پوره کړو ارمانونه

ليلا مو د مقصود لکه سپوږمۍ په هوا ځلي
وصال ته يې په بند بند ماتوو تور زنځيرونه

کاروان د انقلاب مو آسماني څوکو ته رسې
په هر قدم کې ږدو ورته دا خپل زلمي سرونه

داسيل دغضبو به د دښمن په خونه سم کړو
په اور يې سوځوي دغه سرکښه تندرونه

ملګرو زه مو جارشم هر قدم په نره اخلی
زمرو په شانته نيسي نوې نوې موچلونه

کابل ۸ـ ۶ ـ ۱۳۶۲

# زما مينه

زما مينه زما عشق زما وطن دې
دا مې ځان دې دا مې روح دې دا مې تن دې
څو ژوندې يمه وطن وطن به وايم
دا مې بڼ دا مې جنت دا مې ختن دې
پروا نشته که په سرو وينو لاهو شم
هر مين د وينو سيند کې لامبوزن دې
که مې سترګې د غليمو ړندې نه کړې
راته توکړې چې بې ننګه او ډارن دې
زه د هغه پلار نيکه ربښتيني زوی يم
چې په ګور کې مردانه پروت سور کفن دې

لغمان ۸-۲-۱۳۵۳

ډالۍ

اروښاد اسحاق ننګیال

# موږ ځارندویان

داوطن بــه جـــوړ کــړو لکه نـاوې د جهان
موږ ځارندو یان
موږ ځارندو یان
ړنګه به دنیا کړو دغمو نـــو درنــــځونـــو
ورانې به کړو ځلې دنادو د وذلتــــونــــو
لنډه به کړو لاره ددې منډو مـــزلـــونـــو
رسو به منزل ته دخپل هیلو ، امیـــدونـــو
کوږه ملا ترلـــې دې هـــــدف ته یو روان
موږ ځارندو یان
موږ ځارندو یان
موږ جنګې لښکرو دز یارایستونکو داسـرو
موږه لارښوونکې د سـر کشـوتــو پـــانو
موږه مخکښان د انــقلاب د قـــافـــلو
موږه خادمان د خپـــلو لـــویـــو پرګنو
موږه ددې وطن د هسکو غرونو شنه زمریان
موږ ځارندو یان
موږ ځارندو یان
هوډ مو وسپنیې دې، تندر یـزمــو ګـوزارونه
هیلې مـــو سپیځلې، مقدسه مــوجنــــګونه
نه پریږدو تر مرګه مــوچلو نــــه سنګــرو نه
ایښې مو لاسو کې قربانې ته خپـــل سـرونه
جنګ سره موجنګ دې امن او سوله مو ارمان
موږ ځارندو یان
موږ ځارندو یان

کابل

/ ۱جدی / ۱۳۶۱

# دپاڅون بهير

دټوپان دراتلو زوږ دي
ګړندي سيلۍ چليږي
توري وريځې لويې لويې
پټې پټې ويلې کيږي
*  *  *
په هر ګوټ کې لګيدلې
دپاڅون غړانده اور دې
خس خاشاک پکې سوزيږي
دادنوې ژوندون شور دې
*  *  *
د دې توري شپې سينه کې
دارمان ستورې پيدادي
ژربه وځلي په بيړه
دانو خيال نه دې رښتيا دې
*  *  *
د وطن غوږ کې چغار کړې

دتغير بدلون سندرې

دهيواد انسان ته ښيي

د قيام په څون خبرې

*    *    *

سور جكړې را اوتلې

په مستې مستې چليږې

ليرې ليرې به كړې دوړې

داېې عزم داپيمان دې

*    *    *

كه څه شته مخكې سكرو ته ې

پكې ښورې سره اورونه

په ميړانه ورته دانګو

خير كه وخورو خپل سرونه

*    *    *

موږ به داوراني ويجاړې

وچې دښتې وچې شاړې

په خپل سرو وينو اوبه كړو

كه مو غوټې شي پرې غاړې

*    *    *

د ( شهيد ) دوينو سند كې

د خو نحورو كور ورانيږي

همدغه سپيڅلې وينې

بې کساته نه پاتيږي

*　*　*

ستر سيلاب مو په شنا دې

رابهيږي مست سيندونه

تندر تندر غږ مبهار کا

لړزوي ځمکې هسکونه

*　*　*

دننګونو په لار نيسو

نوي نوي سنګرونه

دپاڅون بهير روان دې

غوا ړې نوې مور چلونه

بغلان

۱۳۵۷ / ۲ / ۸

ډالۍ                                                اروښاد اسحاق ننګیال

# د انقلاب چیغه

تل به تور تم نه وي

ژر به رڼا شي

که شپه اوږده شي اوږده

بیا به سبا راشي

د توپانو کاروان به

په ځغاستهٔ بیا راشي

بیا په مستو څپو

د ژوند څپا راشي

جبر وستم به نه وي

ښه به دنیا راشي

د انقلاب چیغه به

رښتیا رښتیا راشي

بغلان

۲ / ۱۲ / ۱۳۵۵

# د هیلو بڼ

زړګـې شــو راتـــه ویـلی پـه ګـریـوان ورژیـــده
ککــونــه مــی پــه مــخ لــکه بـــاران ورژیـــده
جـــرس چـــی پـــه غــوغـا د بـیلـتون او د هــجران
د هــیــلــو بــڼ بـی بـــاده بـــی خـــزان ورژیده
ګـوګــل نــه مــروری شــوی د سـرو ویـنو غـوټی
بـلبـل یــی فـــریادی شـــو ګـــلـستان ورژیـده
شـهیـدی مـی شـــوی خـدا یه !د زلـمی عمر اسری
د ژونــد ستـــوری مـــی ورو ورو له آسمــان ورژیـــده
ژړا مـــی کـه پـه ښـکلو بـانـدی نـه کوی اثر
خـــو زمـا مـړاو وسـلګـیـو تــــه جـهان ورژیـــده
اوس راشـــی لــږ خــو وپـــوښتـی لـه حـاله د نـنګیال
چـی ښـــنګه یـــی پـــه هــیلـو ګـورستان ورژیـده

# زما هوډ

که مې سر په بيخ کې غوڅ شي له تنې نه
که مې زړه په منګولو وځي له سينې نه
که مې دواړه سترګې سر نه رابهر شي
په ګولو که مې سوري سوري ټټر شي
که مې ژبه په چاړو له حلقه پرې شي
که مې سرې وينې رګونه را خوري شي
د وطن په ننګ دا ټول په ځان منمه
زه افغان يمه خپل هوډ پوره کومه

*   *   *

پت ميړانه راته پاتې له پلرو ده
ننګ، همت راته ميراث د پلار نيکو ده
زه د تورو د شرنګا په ډګر لوی يم
زه د سترهسکو غرو د څوکو زوی يم
ما ته مور د غيرت درس راکړ شيدو کې
روزل شوی يم په غيږ د تو پانو کې
زه توپان يم سيلاوونه ويښومه
زه افغان يمه خپل هوډ پوره کومه

* * *

دا وطن زما او زما د بچو کور دی

دا وطن مې د انا او بابا ګور دی

دا مې مینه دا مې وینه دا مې تن دی

دا وطن د هر افغان زړه او بدن دی

دا ټاټوبی د باد تورو جنګیالو دی

دا زانګو د غیرت منو پر ګنو دی

زه به دا وطن په سرو وینو ساتمه

زه افغان یمه خپل هوډ پوره کومه

* * *

دا وطن مې د ګور بتو زمرو ځاله

دا وطن په ټول جهان ورکوم چاله

د سیلاب خوړونو خاوره ده سپېڅلې

کارنامې یې په جهان برېښنې ویاړلې

د غیرت غرږیی جګ شوی تر معراجه

هر غلیم یې دی په خاوره کې تاراجه

زه یې پټ ځینې خپل سر قربانومه

زه افغان یمه خپل هوډ پوره کومه

# سپینکې مخ

نـــــه پـــــو هیـــږم دادې مــــــخ دي کـــه آفتاب
چـــې میـــــــن زړو نـــــه چـــوي لـــــکه حباب
سپـــــین رخســـــار دې هسې نـــور شیندې په ګلو
چـــي لالــــــه ورځیـــــنې اخـــــلې آب و تـــــاب
د لـــــه ښکـــــلې سبیـــــنکې مـــخ ځینې کـړې شرم
چـــــې پـــــه شپــــه کې ځان ظاهر کاندې مهتاب
چـــې نظر دې دګلبـــــڼ پــــه ګلو پـــریـــوځې یـــوځې
مـــخ پــــه پـــــانـــو پـــتـــول کـــا ګـــل ګلاب
ستـــــا د ســـــرو لبــــو نـــشه چـې مـــالیـــدلې
اوس پـــــه مـــــا کـــــله تـــاثـــــیر کـړې خم شراب
زاهــــدان دزمــــانـــې بـــه زهـــد هیــــر کړې
کـــه ښکـــــاره نـــــازک صـــــورت کـړې له حجاب
مــــــړاوې مـــــــړاوې راتــــــه مه ګوره ویریږم
چـــــې مـــــې نـــه کـــــړې د ښـــو پـــه سیخ کباب
زه دې خـــــاورې د قــــــدم پــــــه ستــرګـــو مـــوښـم
تـــــه مـــــې وژنـــــې پـــــــه چـــــاړو لــکه قصاب
زه دې جـــــار شـــــم درنــــه وګـــــرځـــــم زر واري
لـــــږ مـــــې ســـاتــــه نـــــور د هجـــر لـــه عذاب

کابل

۱۳۶۲ / ۱ / ۲۲

# زلمې حسن

دا مې زړه دې که په اور سوي کباب
نه پوهیږم یا سپر غې دي یا حباب

چې لمبې مې د ګوګل له څوکو خیږي
دا غذاب د محبت دي که ثواب

په مستې مستې یې عقل نه بهر کړم
ټنګوې زما د سوي زړه رباب

له خماره مې په وینو نه مړیږي
په مزه مزه یې څښې لکه شراب

په ملا لو خمارو سترګو مې وژنې
سر تر پایه یم له ویرې ضطراب

د زلمې حسن له ما صدقه غواړې
قتلوې مې په بڼو لکه قصاب

نور به نوم د محبت په خوله وانه خلم
که ( ننګیال ) ووت له دي غمه کامیاب

اروښاد اسحاق ننګیال ډالۍ

# دجنو لاره

(( هرګز به توبه نه کړم )) لــه شـــرابـــو شـــرابـــې یم
ســـاقـــې جــامـــو نه راکه چې خراب او خمـــارې یم

زاهـــد دي تسبیحات که د جنـــت پـــه تـــمه تـــمه
له مـــا ســـره یـــې څـــه دې زه په خپله دوزخې یم

پروا د کبـــاب مـــکړه د تـــاکـــونـــو زوښې راکه
دزړه غـــوښـــې بـــه خورمه هم کباب هم کبابې یم

داعقـــل رانـــه واخـــله خـــدای له پاره مې فروشه
د مینـــې سمنـــدرکـــې یاغې شوي توپانې یم

کعبـــه مـــــې میکده ده زما له نورو سره څه دی
دا څـــکه لـــه ازل نـــه دې کعبه کې زندانې یم

( ننګیال ) درنـــه څمـــه د جنون پـــه لـــویه لاره
لـــه ټـــولـــو سترګـــو لیرې یو اغزې بیاباني یم

کابل

۱۳۶۲ / ۷ / ۱۷

# د بزګر خونه

په نړيدو شول زاړه قصرونه
په رپيدو شول سره بيرغونه
ددنګو دنګو بنګولو په څوکو
په لګيدو شول غلې او رونه
ځواني څپې شوې په منډو منډو
په ويښيدو شول ويده بادونه
هتکړې ماتې، زولنې ماتې
ليرې شول زموږ له خولې مهرونه
اباسين مست شو هندوکش ناڅې
په غوريدو شول پټ تندرونه
هيلې تازه شوې بيا راټو کيږي
سينو کې شور کا ځپلې زړونه
نورې شوې ورانې دوينو لارې
سپينه رڼا شوه د بزګر خونه
لنډ کړل له بيخه غضب د خلکو
ناولې چارې خونې لاسونه
بيا راژوندې شوې د غيرت چيغې
داد عمرو نو چوپ فريادونه
ملګېو وايې په چيغو چيغو
تل دې ژوندې وي انقلابونه

پلخمرې
۱۳۵۷ / ۲ / ۱۰

# خوشپه سبا شوه

دآسمان ستورو تورو شپو کې ستر ګکونه وهل

سپینې رڼا ته یې مطربو ربابونه وهل

بلبل دپاو او ښاخونو سره

بورا نازکو سرو مخونو سره

نسیم دګلو له عطرونو سره

زما په زړه یې ویده اور دعاشقۍ ویښاوه

لمبې خورې شوې

ساقي په لاس کې راته جام دمیو ناب ښوراوه

آشنا په خولې کې راته سرو

شونډو شراب زبیښاوه

زه دنشو خوږو خیالونو سره

دخوږې مینې مکیزونو سره

دیار په غیږ کې د خوبونو سره

دا د مستیو په ټالو کې زنګیدم زنګیدم

د وصال شپه وه

دا له مستیه زما غیږ کې ښوریده ښوریده

زه له خوښیه د دې غیږ کې تخنیدم تخنیدم

زه یې له تنکو تنکو لبانو سره

زه یې د زلفو له مارانو سره

زه یې خمارو سرو چشمانو سره

په پټه پټه غلې شانته لوبیدم ، لوبیدم

خو شپه سبا شوه !!

کابل

۱۶ / ۷ / ۱۳۶۰

# پروا نشته

که هر څـــه په درد او غم کې تار په تار یم
هسې نه چې ستـا له مینـــې توبه ګار یم
په باران د کاڼي کړښــه نــه ورانیـــږي
زه د کاڼـــي کرښـــه هســـې استوار یم
اوره اوره دیــار غـــمه پـــه مـــا اوره
وراتــلو تـــه دې شپـــې ورځې انتظار یم
کوکې کوکې ډار او تـرس له سوزه نه کړم
سوځه سوځه ما پـه اور سـوځه تیــار یــم
د تیرو سترګو خنجر که مې پـــه زړه کـــړې
څو ژوندی یـم ستـا د لطف به منت بار یـم
پـــروا نشـــته کـــه وفـــا نه کړې جفا کړه
خـــو همـــدومـــره راته وایه زه دې یار یم

بغلان

۱۳۵۶ / ۹ / ۳۰

# وطنه پاڅه

وطنــه پاڅــه ، ژرشــه ویښیــــږه
ارمـــان ته رســي ، سره امیـــدونه
بیـــا دې ګلشن تــه، نسیـــم راوړي
سره غــوړیدلي ، تنـــکي ګلـــونه

***

ولس ویښ شوې ، خلک ویښ شــوي
ســـره یـــو شــوي ، خواره کامونـه
لښکر لښکر شـــوې ،دزمـــرو ډلې
دتورو بریښ دی ،دننګ ســـازونه

***

وطنـــه ګـــوره ، خپـــلو بچـو ته
دې ننګیالو ، پیغـلو زلمـــو تـــه
ګـــوره چـــې لامبي ، دځان په وینو
ګـــوره چـــې دانګــي ، داور خپو ته

***

وطنــــه ګــــوره ، ستــــرګې رڼې کړه
زلـــــزاې ښوري ، سکــــوت ماتــــيږي
هتــــکړې څــــه شوې، زولنې څه شوې
اوس دحاکمو ، پښــــو کې شــــرنګيږي

***

ځمـــــکه تاوده و لمـــــر نـــــوراني شو
تنــــدري قــــــهر ، مــــو تو پاني شو
غضــــب مــــو وسول، دعيش قصرونه
تــــور زنـــــدانو نه ، تور ګودالــــو نه

***

وطنــــه ګوره ، څــــه شور او زوږ دی
چــــې رانـــــږي ږي ، دستـــــم بارې
ظلـــم بربــــاد شو ، ظالـــم برباد شو
له زړو يې څا څــــــي ، دوينــــو دارې

***

وطـــنه ګـــــوره ، ستــــا پـه لمن کې
غوټۍ غوړيږي، څانـــګې نڅـــــيږي

ستـــا پـــه دروکې، ستا په رغوکې

دنیکـــمرغـــیو ، ډیـــوې بلـــیږي

***

زه ترې لوګې شم ، ترې سپیلنې شـــم

ستا له اتلـــو ، باتـــور بچـــیانـــو

زه ترې قربان شم ، زه ترې قربان شـــم

ستا له شهیدو ستـــا له غـــازیانـو

***

پریږده چې ټینګ شي، زموږ په وینـو

ستا مورچلونه ، ستا سنـــګرونـــه

پـــریـــږده چې ځلي، ستا په هوا کـې

دننـــګ تـــوغـــونه ، سره بیرغونه

کابل

۱۳۶۱ / ۴ / ۱۷

# دمینې غوټې

چې مې دې شونډو کې دناز خوږه خندا ولیده

مامې ژوندون سره قسم دی چې سودا ولیده

خوږې موسکا سره چې تا ویش دغمو کولو

اوس مې په زړه کې دخپل غم برخه رښتیا ولیده

تا چې شراب دسرکو شونډو بې بها راکول

نن مې په شونډو علامه دزهرو بیا ولیده

دزړه په وینو مې دمینې غوټۍ وغوړیده

نن مې هاغه غوټې په باغ کې دبل چا ولیده

هغه مهرو چې تر قیامته مې دځان ګڼله

اوس مې دبل سره ترخنګه په نښا ولیده

لغمان

۵ / ۱۱ ۱۳۵۲

# نوې سرود

دوطن دهسکو غرونو

په دا جګو جګو څوکو

دپامیر هندوکش سرکې

دآمو هلمند په تل کې

بیا دلمر وړانګې ځلیږي

تورې وریځې ویلې کیږي

***

دهلمند سیند په شنا دی

ستر موجونه یې نڅیږي

ځي کوکچه په غورځو پرځو

له مستیه غړمبهار کا

ابا سین کې شور اوزوږ دی

له خوښې څنې ګډیږي

***

دیوه نوي سرود سازدی

چې غرېبږي په فضا کې

ګوټ په ګوټ سيمه په سيمه

دآسمان جرقو بريښنا کې

ورکې زيرۍ ولسو ته

دسبا څرېکې شوې شپو ته

و دې خوارو پرګنو ته

***

مړاوي زړونه راغوړېږي

په سينو دزړو ځوانو

دلو ګرو ، کسب ګرو

په ګوګل دکارګرانو

دې خورو ورو کامونو

خوار ځپلو اولسونو

ځان له خاورو رابهر کړو

کونډو رنډو يتيمانو

***

ستر جکړ را الو تلې

په مستې مستې چليږي

ددې خاورې په فضا کې

په دې زړه دایشیا کې
مړاوې هیلې را ټو کیږي
ولولې مو راویښیږي
تلوسې مو هوسیږي
بیا یوه نوې ساه خپره شوه
تش کالبوت داریانا کې

***

دتاریخ ویاړ جنې پاڼې
غورځنګونه ، پرتمونه
پت میړانه دسوبمنو
توره ډال دغیرتمنو
کارنامې دشهیدانو
دغازیانو نیکه ګانو
بیا له سر ځینې تاندیږي
تیر یادونه ژوندي کیږي
کابل
۱۳۵۹ / ۶ / ۲۶

# شهيد شاعر (۱)

دا ستبـــداد پـــه ســـرو اورو کـــې کړېدلې شاعر

د پرګنو او دولس غمـــو خوړلـــې شـــاعـــر

دا د زيـــار کښـــو بې وزلانو ، کونډو رنډو ميـــن

دا رنځيـــدلې، زوريـــدلې، درديـــدلې شاعـــر

***

ده په ټول ژوند کې رټل شوي انسانان ستـايـــلي

ده دولس ښادي خوښيو کې مدام خنـــدلــــي

داو د خلکو چـو پړي او پـــاړکيـــوال ستـايوال

ده په ژړا ماتـم د خـلکو هـــر زمـــان ژړلـــي

***

دادرزمونو پیکارونو سرو اورونو اتل

داد وطن او انقلاب په مینه مست قهرمان

دادمرام او ارمانونو داوږدې لارې مل

داددې خلکو درنځونو او دردو ترجمان

***

داد ملګرو شهیدانو په لار تللې شهید

دا په خپل سرو وینولت پت او لمبیدلې شهید

دادهمرزمو همسنګرو قربان شوې «سنګر»

دادوطن خلکو «محبوب» ستر او ویاړلې شهید

کابل ۱۳۶۰

( ۱ ) محبوب سنګر ته.

# دشونډو صراحي

اشنايه نـن دې مــاته څــه راوړي دي که نـه؟

دميـو پـه بازار دې څـه ساتــلي دي کــه نــه

له ډيـرو بې صبـريو مې دسترګو کسي سوځـي

تــه ګـــوره چـــې له هجره مې ژړلي دي کــه نه

دزړه خـــونـه مـــې وسپـړه داغونه يکې شماره

تنها کې يکـــې ګـــوره چـــې چاودلي دي که نه

پرې مـې ږده دشــونډو صراحي تر سرکو څوکو

چې مـــې ورنه پـه غـــلاکې چا رودلي دي که نه

دسترګو پـه کاسو کې دې عجيبـــه ترشي وينم

رقيب خـــو دې غـــوږو کـې څه ويلي دي که نه؟

بغلان ۹/ ۶/ ۱۳۵۶

# دبو سو خیراتونه

يار راسره مل شو دنيشو پــه جنتـــونو کـــې
داڅه جادو پروت دی دســاقي ډکو جامونو کې
رايې کړلې شونـــډې نذرانه کـــې دزلمي حسن
شونډې مې مړې شوې دبو سو په خيـراتونو کې
تړمې تړمې اوښکې مې له سترګو مرغـلرې شوې
زيرې دوفا کوي آشنـا په سترګـکونـو کـــې
نا څم له مستيـــه دهـــوا ياغـــي مـــرغه شومه
ګرځم يې دزلفو دباغچو په ســرو ګلــونـو کې
مخ ته يې پتـــنګ شـــومـــه دلبو يې بورا يمه
کاشکې چـــې لمبـه شمه ددوا ړو په اورونو کې
ډوب شـــوم لـــه مستيه دځواني په هوسونو کې
اوړم ګنـاهــونو کې را اوړم ګنـا هونـــو کـــې

بادغيس ۱۳ / ۹ / ۱۳۵۷

# دمینې غم

چې مې زړه کې راپیدا دمینې غم شو
سپیلنې شو لوغړن قلم قلم شو
محبت یې زه په هسې رنځ اخته کړم
چې علاج ته مې طبیب له عقله کم شو
مینه اور دی په دې اور یم ستې شوې
هر سپرغۍ یې کله تیغ او کله بم شو
دمردکو په ډلیو کې ژوندون کړم
چې مین مې زړه په سترګو دصنم شو
په نظر کې له ورایه جادو نغښتې
سحر طلسم یې په ما رقم رقم شو
ساده دل وم له انجامه خبر نه وم
اوس ارباب راته دظلم او ستم شو
ما یې مینه رښتیانې رښتیا ګڼله
دریغه ، دریغه چې ګوهر راته شبنم شو

لغمان ۳۰ / ۱۲ / ۱۳۵۳

# اورډه مزلونه

سوځمه داور په لمبو سوځمه

هرې خواته ګورم انګارونه دي

زړه کې مې دغم او اندېښنو څپې

پښو کې مې چار پېره زنځيرونه دي

نه پوهېږم دا لاره به څومره وي

څومره چې پرې ځم اوږده مزلونه دي

نه خېږي فرياد مې له خولې نه خېژي

ايښي يې په خولې راته مهرونه دي

نه نه... دا هراس مې ويروي نه شي

مخ ته مې نژدې انقلابونه دي

کابل ۲۱ /حوت / ۱۳۵۴

# ګلې راشه

بېله تا مې دزړه صبرو قرار نه شي
ګلې راشه چې مې اوږد انتظار نه شي

زه به لاره په بڼو درته جارو کړم
چې نازک خاطر دې چیرې آزار نه شي

ما دهجر په اور مه سیځه ظالمې
دا تنکې حسن دې ګوره خونکار نه شي

زړه مې ستا دمینې ډکه خزانه ده
ستا په شوخو کتو پام چې انکار نه شي

رنګه بنګه مې په غیر کې راخوره شو
نور مې ویره له رقیب او اغیار نه شي

باده پام کوه چې ورو ورو ،راچلیږه
تورې زلفې یې په مخ شب وتار نه شي

کوم قد غن به یې (ننګیال ) له مینې تم کړي
څو منصور غوندې په دار او سنګسار نه شي

کابل ۱۵ / ۱ ۱۳۶۲

# تاهيرومه

بيا مې په زړه کې غمونه ګډ شول

بيا مې له سترګو اوښکې څڅيږي

بيا مې د عقل ستنه کږه شوه

جنون له ورايه راته مستيږي

بيمې مغزو کې ليونې شور دی

هيلې مې مړاوې مړاوې رژيږي

ای زما مينې ، ليونۍ مينې

نور درنه ځمه

تاهيرومه

***

ماوی چې ته به مې د زړه کور شې

ماوی چې ژوند ته به مې رڼا شې

ماوی چې سترګې به مې رڼا شي

زخمي زړګي ته به مې دوا شي

ماوی چې مړ به راځنې اور کړي

خواته به راشي تل به زما شي

ای زما مینې ، لیونۍ مینې

نور درنه ځمه

تاهیرومه

***

دعشق په لار کې دې آیته کړم

تا په سینه کې داغونه راکړل

تا په څو نرمو ، خوږو خبرو

دمیو جام کې زهرونه راکړل

تاراته چل کې له سورکو شونډو

ماته په خوله کې اورونه راکړل

ای زما مینې، لیونۍ مینې

نور درنه ځمه

تاهیرومه

***

مینې ما پرېږده چې درنه ځمه

خیر که سوځېږم خیر که ویلیږم

یو داغ دې شته دی زما په زړه کې

زه به تر مرګه پې مشغولیږم

پرېږده چې خیال کې له تانه لرې

ستا له یادونو سره لوبیږم

ای زما مینې ، لیونۍ مینې

نور درنه ځمه

تاهیرومه

بدخشان ۲۵ / ۹ / ۱۳۶۵

ډالۍ — اروښاد اسحاق ننګیال

# خماري تنده

ساقي پیمانه واخله نو خمونه تشوم
رګ رګ کې مې دمیو دریابونه بهوم

له سوزه دخمار او دساړه عقل دلاسه
دزړه په نغري باندې اورونه بلوم

پروا دزاهد مه کړه ساقي ژرشه راکوه یې
دوزخ راته راښیه جنتونه نړوم

احتیاط چې کوم یو مټ له دې قطاره خیانت نه شي
که یو څاڅکې ترې کم شي قیامتونه ویښوم

زما خماري تنده دڅو ورځو تنده نه ده
ددې تندې له زوره ډېر دردونه تیروم

یو داغ نه دی په زړه کې چې یې څو پیالې دوا شي
خمونه تشوم پرې پرهارونه رغوم

کابل ۹ / ۱۱ / ۱۳۶۱

# زما ګونده

يه زما زما سپيڅليه ګونده
زما ننګ زما نا موســـه
ته مې پت ته مې عــزت يې
ته شرف تــه مـــې ايمـــان

تا دځـــان پـــه وينو ساتم
سر ښندل زمـــا نـــاره ده
کا شکې ومرم ستا له پاره
څو پوره مې شي ارمـــــان

دامې عزم دامې هوډ دی
دامې دنده دامې پريکړه
دژغورن پـــه لار دې ځمه
دامې لـــوړه دا پيمـــان

ستا په عشـــق او مينه پايم
تابه وايم تـــا به ســـتا يم
ستا په پت کې زما پت دی

ډالۍ

اروښاد اسحاق ننګيال

ستا په شان کې زمـــا شان

زړه مـــې خوځي ستا لپاره
سر بــه ښـــــندم ستا لپاره
شهيدان بــه دې ګـــټمـــه
که مې ځـای شي ګورستان

ستا درنه غيرېږه کې لوی شوم
تا دژوند درســــونه راکړل
تا عا قل کړم تـــــا اګاه کړم
يې له موره راتـــه ګــــران

زه دتـــا پـــــه نـــامــــه وياړم
زه پتنګ ته مـــې ډيـــــوه يـــې
پرېږده پرېږده چې مې ژوند کړم
ستا له مينې نـــــه قــــربـــــان

مــــا منـــلي ستـــا په عشق کې
درد او مرګ په دواړو سترګو
که ايــــرې شــــم ستــــا لپـــاره
دابـــــــه هـــــم ګڼـــم ارزان

کابل ۱۱ / / جدي / ۱۳۵۸

# د مینې سوز

لکه ماته چې د مینې ســـوز رسیـــږي
هسې کله په اور شمعې ویــلې کیـــږي

هر سپر غۍ داور زما دزړګي کـــورشـو
هڅ هڅو کې راته سیـــځي ایــره کیـــږي

ربه چاته ګریوان څیـــــرې کـړم وژاړم
چې مې یار راته دبـــل په خوله لمسیږي

که هر څومره بار دخاورو په سر باد کړم
خو فریاد مې دچــــا غوږ ته نه رسیږي

هیڅ اثر مې دژړا وربــــانــدې نه کا
مسخرې کوي په اوښکو مې خــندیږي

که هر څه نصیحتونه زړه ته وکـــــــړم
لیونۍ شي دماشوم په څیـــر ژړیـــږي

مینه نه ده خوشې خوشې غـــولول دي
نن زما سبــــا دبل غیږ کې نڅیـــږي

نه پوهیږم ددې عـــشق انجام به څه وي
دا اوږده لاره بـــه څـــو راتـــه لنډیږي

کابل ۱۶ / ۹ / ۱۳۵۳

# څه ښه شپه وه

څــه ښه شپه وه می خوړل وو خندیدل وو

څـــه ښـــه شپه وه نځـیدل وو ګډیدل وو

څــه ښـــه شپــه وه درندانو پا چاهي وه

څــه ښــه شپـــه وه دځمونو تشیدل وو

***

څه ښـــه شپـــه دګلرخـو ځـــلیدل وو

څه ښه شپه وه دسرو شونډو زبیښول وو

څه ښه شپه وه دجامـــونو شراو شور وو

څه ښه شپه وه ښکــلول وو تخنـــول وو

***

څه ښــه شپـــه وه راته پیغـلې ګډیدلې

څه ښه شپه وه تـوری زلفــې ښـــوریدلې

څه ښه شپه وه څومره مست وم څه بې خوده

څه ښه شپه وه څه پايزيبــــې شرنګيدلــــې

***

څه ښــــه شپــــه وه درنــــد انو ليونتوب ؤ

څــــه ښــــه شپــــه وه دمستانو بد مستوب ؤ

څه ښه شپه وه څه بــــازار ؤ ، دعيشــــونــــو

څه ښه شپه وه بې هوښي کې هوښيار توب ؤ

***

څــــه ښــــه شپه وه څــــه تارونه غږيــــدلو

څه ښه شپه وه ويده زړونه ويښيــــدلو

څه ښه شپه وه بې غمي وه ، آرامي وه

څه ښه شپه وه يار مې غيږ کې لوبيدلو

***

څه شيبې وې څــــه يادونه څه بزمــــونه

څه شپې وې څه ګډاوې څه ســــازونه

څه شيبې وې څه ديار مينه خوږه وه

څه شيبې وې څه يې غيږه کې خوبونه

***

داويده وه ما يې زلفې لوبولې

داويده وه ما يې سرې شونډې رودلې

داويده وه دحيا لمن کې پټه

داويده وه دحيا لمن کې پټه

***

ربه څه شو ! اوس زما جهان دمينې

ربه څه شو ! دازما ارمان دمينې

ربه څه شوه دازما ليونۍ څه شوه

ولی راغی بيا په ما خزان دمينې

کابل ١٣ / ٥ / ١٣٥۴

# غولیدلو هیواد والو ته

یه وطنوالو ، یه هیوادوالو

یه لرې لرې ، یه پردیسانو

یه غولیدلو دوطن خلکو

یه دبل کورکې ، مساپرانو

***

یه شمله ورو ، یه رېبرورو

شمله مو څه شوه ، همت مو څه شو

ولې سوداشوې ، دبل په لمڅه

برم مو څه شو ، غیرت مو څه شو

***

اوس راته رسي ، دغرو له هاخوا

ستاسو له پښو نه دزولنو شور

په سترګو وینم ، په غوږو اورم

ستاسو لاسونه، داتکړو شور

***

«اوس دبادونو مستـــو څپو کې
ماته رارســـي ساســـو غوړونه»
ګورم چې لـــوړ شول دآسمان زړه ته
دتاسو چيغې ، کړيکې آهـــونـــه

***

ګورم چې څنګه ددام مرغۍ شوې
دښکاري لاس کې به حلاليـــږي
ستاسو پټ وينم چې درنه تښتي
په دې ډاريږم چې رسوا کيـــږي

***

يـــه وږيـــو تـــږيو لـــوڅو لغړو
يه دعمرونـــو رنـــځـــو وهـــلو
يه درديدلو ، يه کـــړيـــدلـــو
خـــوږمنو خلکو غمـــو خوړلو

***

داڅومره ننګ دی دا څومره شرم

## چې افغانان دې له وطن تنبتـــي

دابه نو کوم یو عقــل قبـــول کا
چې بلبلان دې له ګلشن تنبتـــي

***

داوطن ستا وو ، داوطـــن ستــادی
دا وطــن پـــاتې لـــه پلار نیکونو
دامـــو ګټلې دامـــــو ســـاتـــلــې
دځان په غوښـــو دزړه پـــه وینـــو

***

راشی پـــه مینه دوطـــن غیـــرت ته
دوطن ستـــرګې درتـــه کـــږې دي
اوس مو په خاوره سباوون ښوري
دانقلاب پرې سپیدې خـــورې دي

۱۴ / دلو ۱۳۶۱

# دمينې څنکندن

څومره سخت ساعت دی دغم کانې را اوريـــږي
دريغه ، دريغه ، دريغه چې اشنا رانه بـيليـــږي
ما خــو دژونــد څېــکه داشنا مخ کې ليـــدله
پوه شومــــه چې اوس مې دژوندون پانه رژيږي
فکر او عقــل واړه رانـــه لاړل او ياغـــي شول
بـــاد دليـــونتوب راته پـــه سر او مخ لګيږي
مينه مې په زړه کې په سلګو شوه څنـکدن کړي
کانې بو تـــې ګوره چې زما پـه حـــال ژړيـــږي
مـــرګه رارسيـــږه خـــدای له پـــاره مه تميږه
دابه څه ژوندون وي چــې بــې ياره به تيريـــږي
ډوب شومه «ننګياله» نور په شرم او پيغورکې
هر څه ته چې ګورم ورنه سترګې مـــې شرميـــږي

بادغيس ۲۴ / ۷ / ۱۳۵۸

# دابه مې سزاوي

ننه په زړګي کې مې لمبې لګي

مستۍ ليونۍ دغم څپې لګي

شورکوي په زړه کې مې غوغا کوي

سازکوي ، اوازکوي نڅا کوي

اوس ليونۍ کېږم

خدای چې مروره رانه مينه شوه

اوس مې نو خوراک دزړګي وينه شوه

څه وکړم ګريوان چاته پاره کړمه

چاته دازخمي زړګې ښکاره کړمه

وه ژاړمه چاوته ناره کړمه

اه مې هيڅ څوک نه اوري

خیـــر دی دیار عشق کې سودایي ښه یم

ورک لـــه کور اوکلي سودایي ښه یـــم

پریـــږده لادغم پـــه اور کباب شـــمـــه

وســـوځم لمبـــه شمـــه خو ناب شمـــه

ومـــرمه زړه چـــاودې شم حباب شمـــه

دابـــه مـــې ســـزاوي

کابل ۴/دلو / ۱۳۵۹

# نجلۍ

بيا د مطرب په نوا مسته ده نڅيـــږي نجلـــۍ

پاې زيبه مه يې شرنګوه چي رسوا کيږي نجلـــۍ

ميـــګونې شونډې يې خمار دمې خورو ما تــوي

مسکې شي وخاندي غوټې غوندې غوړيږي نجلۍ

ځلين رخسار يې د آسمان زيب او بريښنا شرموي

سپوږميه بريوزه چي رڼا ته دې خنـــديږي نجلـــۍ

بيا د نرګس او لاله رنګ مړاوې زيبنېلې ښــکارې

ځکه په لښتو يې شوخـــې کوې لوبيږي نجلـــۍ

زړګيـــه غلـــې شــــه آواز د تــو پومـــه وباسه

بيا به په منډو شي حياورځي شرميـــږي نجلـــۍ

بغلان

۶ / ۱۲ / ۱۳۵۵

# د مغان خرابات

بیــا شــه شـور ده شه غوغا ده د مغان په خرابات کې
شــه د عشـــق نغمې غـرېږي د مطربو پــه رباب کـــې
شـــه کـــړ نګار دي د جامونو شـــه بازار دې د مستیـــو
شه خـــــوږې نشــې پـرتې دي د ساقي په میـــو ناب کې
بـــې هوښــې دې بیخـــو دی دي جهـــان د بې غمیـــو
غم اندوه لره ځاي نشتــه د رندا نو په کـــتاب کــــې
اې زاهده ای نا صـحه ما ته وعظ نصیحت مـــه کـــړه
هسې خوند چې دلته شته دی نه مسجد او نه محراب کې
ساقي راکړه پیالې راکـــــړه راکـــوه یې را کوه یـــــې
څو چې ډوب شمه لاهو شم داد سرو میو دریــــاب کـــې
دا مې کور کړه د خوښیو میخانه زما مســــکن کـــــړه
څو ژوندې یم پکې پایم د نشو سیل او سیــــلاب کـــې

لغمان

۱۳۵۳ / ۲ / ۳۰

ډالۍ اروښاد اسحاق ننګیال

# د پښتو خبره

آشنایه ګوره خــوا ته دې په غلا راغلې یم
دیدن ته دې په پټه پټــه بیا راغلــې یــم

له و همه د چو غلو له هراس د رقیـــبـانــو
ترخنګ دې په الله او بسم الله راغـــلې یـــم

نن بیا د تنکې حسن غوړېدلو بـاغیچو تــه
بلبل غوندې په چیغو پــه ژړا راغلــې یـــم

په یاد د آدمخورو ، لیونو ، مخمو رو ستـــرګو
مجنون غوندې له دښتو او سارا راغلــې یـــم

یو جام د میو راکه له سورکو میګو نو شونډو
په ډیرې بې صبرې او وار خطا راغلـــې یـــم

د خدای له پاره نور را تـــه د تلـــو خبرې مه کړه
داو ښکو له جرګو له جرګو سره همرا راغلې یم

رتــل د عــاشقــانــو د پښتــو خبره نه ده
ننګیـــال درتـــه پـــه عــذرو په دعا راغلې یم

کابل

۱۳۵۴ / دلو / ۱۷

# ساقي

وخوړمه خدایږو داغمجنـــې زمـــانې ســـاقي
راوړه راته راوړه دمستیو پیمـــانې ساقـــي
وبـــه چو له غـــمه اشنـا جګې جګې ژرکوه
ډکې کړه په بیړه له شرابو نه پیـــالۍ ساقـــي
ستـــادې دشـــرابو په پاکې او تقـــدس قسم
مکړه راته مکړه دومره دومره بهـــانې ســاقي
عقل رانه واخله دجنــــــون لارې راوښیـــه
ومې سوځه زړه کې دغمـــونو خزانې ساقـــي
نور به توبې نه کړم کاشکې داتوبه مې ماته کړې
کوربه میکده کړم راکړه ځای په میخانۍ سافي
داسوال مې قبول کړه نور دزهد پـه لار نه ځمـــه
خوښ په خرابات یم مناجات نه مې توبې ساقـــي

۱۳۵۳ کال / لغمان

# دبهار شپه

دبهــــار رنګینــــه شپــه وای

زه اوتــــه ســــره هــمــرا وای

دمطـــربــو تــرانــې وای

ورتــــه دواړه پـــــه ننداــــاوای

***

کنـــډولـــۍ وای دشـــرابو

شنـــــۍ پیــالې مو کړنګولای

بلـــبـــلان پـــه چغیـــدو وای

دګلـــزار پـــه تمــاشــاوای

***

داوبـــو پـــه شــرشـــرو کې

ګـــډیـــدلای لمبیـــدلای

هیڅوک نه وای هیڅوک نه وای

پــه قــهقــا وای په خنــدا وای

***

په شنـــو بو ټـــو غزیــدلای

شبنــــم ورو ورو اوریـــدلای

شپـــه لاهــم پســې اوږده وای

نه رڼـــا وای نـــه سبـــا وای

***

ستا د زلفو سیـــوري لاندې

په خوږو خوبو ویـــده وای

تا پــــه مینــــه نــازولـــی

نه اندوه نه واویـــــلا وای

۱۳۵۳ کال لغمان

# دحسن ډيوې

زړه مې دتا په ديدنو موړ نه شو
باغ په دا ډيرو پسرلو موړ نه شو
څو يې راپورته کړل داور جامونه
ساقي په ډکو پيمانو موړ نه شو
ستا دښکلا په اور سيځلې مين
لکه پتنګ په سوځيدو موړ نه شو
زړه مې شبنم غوندې دګل په څولۍ
ستا په سينه په ويد يدو موړ نه دی
لړ رانږدې که دسرو شونډو غوټۍ
وږی خاطر مې په بو سو موړ نه شو
دګلو غيږ کې زبيښل شوې بورا
دسره ګلاب په اننګو موړ نه شو
لړ راته بلې کړه دحسن ډيوې
«ننګيال» يې اور کې په سوځو موړ نه شو

کابل ۱۳۵۹/۸/۸

# دمینې لار

داجمل خټک د دې غزل په اقتفا

که په متقل لاره تیریږې په مقتـــل ورځــــو
داځل جـــانان پســـې ملګرو تر منزل ورځــو
ورځو ورځو دیار درشل ته پـــه برغل ورځــو
موږ یې دیدن پسې دوینو په بـــدل ورځـــو
پریږده چې خوځې هره خواکې داجـــل وزرونه
مونږه سر تیري یو په خواکې د اجـــل ورځـــو
څو چې له ورایه یې د حسن ډیوې بلې نه شــي
تر هغو پورې به دزړونو په مشعـــل ورځـــو
خیر که په دغه لارکې ټول له پښنو وغورځیږو

## ډالۍ

**اروښاد اسحاق ننګیال**

دزړه په سر باندې دمینې په تکـــل ورځـــو

دمغرور حسن د مغرور جمال لیده پـــه تـــمه

دآد مخـــوروخوني سترګو په مور چل ورځـو

که یې د زلفو تروږمې وي د تلو لاره نـــه وي

موږ یې د ټیک درښا یې په جل او بل ورځـــو

چې یې د شونډو دګر مې په تصور مستیـــږو

که مو په سترګورابښکاره شي په متقل ورځـو

کابل

۱۳۶۲ / دلو / ۱۰

# زما زړه

ربه خـــو مـــره نـــا قـــرار دی زما زړه
د چا غـم کـې ګرفتـــار دې زمـــا زړه
نه پوهیـــږم چاپه کوم تقـصیر نیـــولــې
چې لایـــق یې د سنګســـار دې زمـا زړه
دا بــه څـوک وي چې د غـــم پیتې رالیږي
چې هـــــردم ورنـــه آزار دې زمـــا زړه
داد چا پـه سینـــه ناست ښکاري بازان دې
چـــې زخمـــــې یې په منقار دې زما زړه
زمـــا خـــدایه دا خوني سترګې د چادي
چـــې ګـــولو کـې یې حصار دې زما زړه
داد کـــو مـــې دلـــر بادشونـډواور دې
چـــې ستـــې یـــې په انـــګار دې زما زړه
نه پوهیږم دانا دودې پـــه مـــا څـوک کړې
چې همیش تـــرې نـــا زار زار دې زمـــا زړه

جلال آباد

۱۳۶۱ / حوت / ۱۸

# د بهار وږمه

د بهار وږمه چليږي ګډ وي ځانګې ښاخـونــه
زړه ځمګه ځوانه شوې ښکلوي ګلو مخـــونـــه

د بهار مستو شيبو کې په دې ښکليو باغيچو کې
مطربان سره ټول شوي غـــږوي دزړو تــــارونــه

د خمار په وينو لژند جادوګر ماښام مســـت شوې
دافق په شونډو خښ دي تخنوي دستورو زړونــه

دسکروټو جام په لاس کې ساقې اور سره لوبيږي
تشوي داور خمو نه هير وي پې خپـل غمـــونــه

يو بازار دې د مستيـــو يو جـــهان د بيــخوديـو
د هـــر بـــوټي له شــا خيږي د پيغلو ټو آوا زونه

مادلې دلـــې راوړي ســــره ګلـــونه د لالـــه وو
ښکلـــو مــــه يـــې پـــه پاڼو د شهيدو مزارونه

کابل

۱۳۶۲ / ۱۲ / ۲۸

# دیارې دود

د حمید مومند ددې غزل په اقتفا:

یار راځینې لاړه پسې نه مرم ژوندې پایم

تو زما په مینه چې لا پایم بې وفا یم

یار مې مساپر شو زه لا پایم په دنیا

((تو زما په مینه )) زما په عشق او په وفا

نه مې ځان حلال کړ نه مې وسو ځاو په اوکې

نه په ژړا سر شوم نه مې هیره کړه خندا

نه مې ورته پل د هر قدم په سترګو ښکل کړ

نه يې شوم ملګرې د سفر او نه همرا

نه مې سر له کاڼو سره وجنګاوه په زوره

نه مې ځان لاهو کړ په کوم سیند او په دریا

دا بې حسه زړه مې څه له کاڼو شګو جوړ دې

نه په چیغو سر شو نه پرې وشوه څه بلا

دود دیارې دا و چې له غمه لیونې وای

نه له غمه مړ شوم نه ملنګ کچکول تر شا

زما په شان بې پته محبت کې مونده نه شي

نشته عاشقې کې ما رسوا غوندې رسوا

# درزم ورځې

اوښکې مې لیمو ځنې په مخ دوچیدو نه دي

سوي پرهارونه مې دزړه په رغیدو نه دي

مانه دبهار وږم دشعر په ژبه مه غواړې

دازخمي حواس مې دبهار او پسرلونه دي

ما دحسن باغ او دسپوږمۍ جلوو ته مه بولې

داغمجنې سترګې مې دحسن او جلوو نه دي

پریږدی چې سرې شونډې دسره جام په شونډو خښې شي

زما داترخې شونډې دشرابو دنشو نه دي

زه به څنګه دار باندې دزلفو ښکلا ولیکم

داد دار شعرونه دي دزلفو دمسرو نه دي

پریږدی دار په غاړه درزمو ترانې جوړې کړم

داد رزم ورځې دي دبزم او میلو نه دي

۲۲ / ۹ / ۱۳۵۸

# دحسن څرکې

لکه سپوږمۍ له وریځو ووځـې ځلیـږي پسـې
دزلفو سیوری یې په مخ راشي پټیـږي پسـې
دزړه مرغۍ مې پسې پورته شي نیوې یې نه شـې
ویلې شي وڅاڅي نارې وهي چغیـږي پسـې
ای دحـرمـان لمبـو راپریوځې ما وسوځوې
میینـه ویـنه مـې تاوده کړې چې سرېږي پسې
لیـونې زړه مـې پسـې سترې شو دیدن لټوي
لکه مـاشـوم وړې سلـګۍ وهي ژړیږي پسې
نسیمه جار دې شـم دزلفـو جـال یې ونـړوه
چې یې دحسن څرکې وځغلـي بلیـږي پسـې
نور به «ننګیال» دملنګۍ کچکول خالي رانه وړي
دیدن دمینې لټوي غورځي پـرزیـږي پـسې

بدخشان ۲۶ / ۹ / ۱۳۵۶

# دوزخي عمر

ساقي خدای لپاره وسوم څه د څښنو جامونه راکه
دګمراه عـــقل له ښنـو مې دجنون وزرونه واکه

کــړوي مـــې کړوي مې دخمار ليونۍ کړيــکې
جګــې جـګې ساقي جګې په نشو يې وار خطاکه

تـــو يوم درته په خدايږو په خمُ خمُ ګوهر داوښکو
پــه بـــدل دهريو خمُ يې راته يو څاڅکې اهداکه

دژونــــدون ستــرې بيړۍ مې والله په ډوبيدو ده
دنشــــو پــــه توپـــانو يې راته پورته په هواکه

دګنــاه خبـــرې پريږده زه رسوا ګنهکار خوښ يم
ما دتا لمن نيولې ټول عــــالـم کې مې رســـواکه

دوزخي لنډکې عمر مې دمرګ پو لــــې ته بيـــايي
دا وروستې شيبې ، لحظې مې له مستۍ سره ډکلاکه

کابل ۹ / ۹ ۱۳۶۲

# دوينو مشال

قصاص که اخلي څوک له چانه د خطا په ګناه

ته خو مې وژنې خدای له پاره د وفا پـــه ګناه

ژبه مې ګونګه شي له ويرې څه ويلاې نه شم

چې مـــې رټـــې هـم د خندا هم د ژړا په ګناه

زه دې ديـــدن تـــه بلوم د زړه د وينو مشال

ته مې شړې له ځانـــه ولې د رڼـا په ګنـــاه

زه لکه شمعه تا ته ژاړم پـــه زړه اور لګـــوم

ته مې په مخ وهې دا وښکو د لمبا پـــه ګناه

لړ مې د زړه دا غونه ګوره هم د ذهن پـــرهـــار

بيا مې لمبو کې سوځوه ديوه رسوا په ګناه

کابل ۱۳۵۹

# انګوري پیالې

ستوري د سحـــــر په راختلو دي

شونډې د غوټۍ په غوړيدلو دي

زړونــــه تخنـوي د پسـرلي وږم

زلفـــې د سنبل په رپيـــدلو دي

خانـــدي راته جام د ګلابـــي نشو

ګوتې د ساقي د مچـولـــــو دي

حسن د بهار ، د ميو سرې پيــــالې

خدايږو ، چې ژوندی د تيرولـو دي

نن مې په زړګي کې د زخمو پــــولې

ښکاري چې نو اوس د رغيـــدلو دي

دا ميګونې شونډې انګوري پيالې

خولې که د زبيښلو ، ويلولــــو دي

دا د غم لښکرې د عمــــرو ميلمۍ

زړه نه د ننګيال په وركيــــدلو دي

کابل

۲۳ / دلو / ۱۳۶۱

# لیونې مینه

یاره ستا په محبت زما قسم دی
چې یوه شیبه د هجر په ما غم دی

هسې زه بې صبره تربې دلیدو یم
لکه تربې مړاوې ګل چې د شبنم دی

بیا دې میه لیونې شوه ځنډنې شوه
نه پوهیږم دا نو څه ظلم او ستم دی

چې مې زړه کې ستا د عشق لمبه خوره شوه
اوس نو ځکه لوغړن قلم قلم دی

که فرمان مې د مرګي راشي فرق نه کا
خو هراس مې ستا له عشقه دم په دم دی

ځو ژوندی ستا د مینې بندګي کړم
ما منلې ستا په عشق کې هرماتم دی

لغمان ۱۳۵۴

# دشهيدانو مزار

داچـې خوځي په هوا کې په مستې مستې رپيږي
سـره توغـونه دي وياړلي څومره فخر کا نازيږي
دانـارې دي دشـهيدو ښـانـونـه داتـلو
سرې لمبې دي دسرو وينو دغيرت غـږ ترې جګيږي

***

قافله دميړنو ده ستر کاروان دننـګيـاليـو
دادپت ، همت بچـي دي دا لښکر دتورياليـو
سرښندونکي دوطن دي مينـان د اولسونـو
شهيدان دي دتاټوبي وياړ په داسې جنګياليو

***

دوی اتل او باتوران دي ميړني قهرمـانـان دي
داوطن و دوی ته شمعه دوی يې سوي پتنګان دي
دوی ددې وطن له پته قربا شوي نثـار شـوي
دارښتيني افغانان دي ، دارښتيني افغانـان دي

۱۳۶۱ کابل دشهيدانو غونډې

# دانقلاب جشن

دا جشن زموږ جشن دا ښکلې او زیبا جشن

دا زموږ دخلکو دننګونو او رښتیا جشـــن

دامو دجنګونو ، درزمونو دځلا جشـــــن

دامو دمرام دارمانونو دوفـــا جشـــن

دا مو دې زخمي سترې وطن ته دښکلا جشن

داددې هیواد دخپلواکې او دبقـا جشــــن

***

دلته راته جوړ ښکلي بزمونه اټنونه شــــول

هیلې مو تازه شوې راڅوندي مو ویاړونه شول

لنډه مو شوه لاره بریالي مو ارمانونه شـــول

دلته مو سر لوړي تکلونه او هوډونه شــــول

دلته مو پیاوړي مورچلونه ، سنګرونه شــــول

دلته جوړ دښنه وو دښمنانو ته قبرونــــه شول

دلته آبادي دلته ښادي دلته ډولونه شــــول

دلته سره یو زمونږه ژمنی او بولونه شــــول

***

جګه شوه ناره دانقلاب مو ولس..ونونـــوکې
کليو ، کروندو کې دوطن په سمـــو غرونو کې
وخوځيده وينه دغيرت مو په رګـــونو کـــــې
شور دازادې مو لور را لور په غرو رغونو کـــې
هسکې مو پګړۍ شوې دپلرونو په ملکونو کې
زوږ دخوشحالې راته نڅا کوي ســرونو کــــې

***

په زماوطنه لا پوره دې ارمانـــونـــــه شــــــه
تل دې يې سر لوړي وسپنيز دې سنګرونه شـــه
هيلې دې کا ميا به بريالي دې غورځنګونه شـــــه
هسک دې په دنيا کې دبريو بيــــرغـونه شــــه
غوخ دې دغليمو له تنونه اورميږونـــــه شـــــه
په وطنه جار مو ستـــــا له کاڼــــو نه سرونه شه
هر ځوز او اغزې دې دجنت ، ښايسته ګلـــونه شه

کابل ۴ / دلو / ۱۳۶۱

# پسرلی

یو خوا پسرلې دی بل د ښکلیو بوی لګیږي
بیا په میکده کې بادې خم په خم تشیـــــږي
ګوره له مستې نه چې هر څه نشه نشه شـــول
ودې چوي هغه زړه چې لا اوس هم نه ګرمیږي
باد د سبایې د بد مستیو غیږې پرانیستـــې
پاڼو د ګلاب سره غوټۍ ناڅـــې لوبیـــږي
دلته بهاري وږمه د زړه سوزونـــه وژنـــې
څوک به لیوني وي چې غمیږي نه مستیـــږي
څیـــرې شــــوې پردې د ګناهونو د عشاقو
شونـــډې د مینــــو ســـره یو پربل خښیږي
ورځې د مخمورو شونډو بیـــا د مسیدو شوې
دا سې مستانه ورځې به بیا کلـــه رسیـــږي
کاڼي بو ټي وا ړه زما سترګو ته غوټــې شـــې
شعر مې ابا سین شي په زړګي مې رابهیـــږي

کابل ۲ / ۱ / ۱۳۵۹

# وایه می فروشه !

توی کړه ساقي توی کړه ستا دخم درياب وچيږي نه

زما خماري تنده څو پيالو باندی ماتيـــږي نـــه

وسپړه دخم غوټـــه چـــې زړه پـــکې لاهـو کړمه

دادعمـــر تـــږي پـــه کاســـو باندې مړيږي نه

مـــالـــه دې قالبـــه دســـاړه عـــقـــل راباسه

داليـــونـــۍ ذهـــن مې په بل رنګه صبريږي نه

وايه مې فروشـــه ! ساقـــي جانه زه دې جارشمه

لاره دجنـــون دلـــته تـــيريـــږي که تيـــريږي نه؟

کابل

۱۱ / ۳ / ۱۳۶۲

# آرام جنون

راسې چې جامونه سره پــورته کړو
دادخم اورونــه سره پورتـــه کـــړو
راشې دنشـــو په لمبـــو وســـوزو
سره سره انګارونه سره پورتـــه کړو
راشـــی دا ارام جنـــون را پـاڅـــو
مست مست اوازونه سره پورته کـــړو
ګورې چې ډوبیږو دخمار په ډنــــډ
پاڅی چې سرونه ســـره پورتـــه کړو
راشی داسې وینې راګرمـــې کــړو
مړاوي قــدمـــونه سره پورته کـــړو
لږ خو سره تاو کـــړو درباب خوږی
وناخو غږونه ســـره پــورته کـــړو
رنګه کړو یارانـــو دتقـــوا دیـــره
سر په سر خمونه ســـره پـــورته کړو

بغلان

۱۳۵۶ / ۱۲ / ۱۳

# پرېږدۍ

پريــږدې چې داخړې وريځــې والوزي
پرېږدی چــې دلمر کلی روښـــانه شي
پرېږدی دآسمـــان له دوزخـــــي زړه نه
پيغله سپوږمۍ پورته شي روانــه شـــي
***
پرېږدې دآسمان له خــــــړې تندۍ نه
سپين ستوري راووځي بې حجابه شي
پرېږدې دازړه ځمکه هم وخـــــاندي
ځوانه شي ، سمسوره شي شبابه شي
***
پريــــږدې چـــې له ګـــل سره ګلبڼو کې
بيا خـــزان وهلــې بلبل ونــــــاڅـــي
پرېږدې چې د ســـرې غوټۍ په مخ باندې
څاڅــــکي د شبنـــم به ورو ورو وڅاڅي

***

پریږدې چې دهر بــوټي له شائینـــې

پـــورته د پیغلتیـــو اوازونـــه شـــي

پـــریږدې له هـــر ګـــټ له هرې تیږې نه

پورته د شپونـــکي شپیلې سازونه شي

***

پریږدې چې دخم دروازې خلاصې شي

پورته ترې ساقي داور جامـــونه کړي

پرېږدې چې شي ماتې دعمروتـــوبې

جـــورې پـــه محتسبو قیامتونه کړي

***

پریږدې د سپوږمۍ سپینې ډیوې لاندې

هر عاشق معشوق غاړې تر غاړې شـــي

پریــــــږدې دازړې دګنـــاهو پردې

غیـــږو دمینـــو کـــې ویجاړې شي

***

پریـــــږدې دامو سپینـــو قطرو سره

ګله دمعشو قو دتن عطرونــــــه شي

پریږدې دآمو دغاړې هر بـــو تــــې

زلفو دجنکیو ته ګلونــــه شـــــــي

***

پــریـــــږدې دا زما انقــلابي وطـــن

وخاندي بهار سره مســــتي وکـــــړي

پریږدې چې دا ســـوې سپیلــنۍ خاوره

ونا ځي ، موسکا وکړي خوښي وکـــړي

حیرتان ۱۵ / ۳ / ۱۳۶۳

# خماری عقل

راځې چي سره ووځو يو ځل بيا په سيل د ګلو
يو شور د مستۍ ساز کړو د جامو په کړنګو لو
نن باد د سبا وايي زيري زيري د بهار
راځې چي بهار مست کړو د نشو په ګرمولو
والله چي له خماره خماري عقل مې وژني
ساقيا توفيق راکه لږ د ځان د هيرولو
رقيب خو مو لمبو کې سو زوي په اور د هجر
راځی چي لږ ستي شو د پې مخو په کتلو
ساقي زما زړګې ته دوړمو خبرې راوړه
د شونډو په موسکا کې د غوټې د خنديد لو
دالويه د خاموشي د بيلتانه راځنی يو سه
خبري راته مه کړه د هجران او بيليدلو
ای باده زما خوا ته لږ څه مشک د زلفو خور که
تسل به مې د زړه شي د آشنا په يادولو
بهاره داځل ما ته د وصال يو زيري راکه
داغم راځينې واخله خداې له پاره د سيځلو
کابل

# ډالۍ

زړه راته مست شو اټنو نه کوي

په بې صبرۍ رانه پرواز غواړي

ګوګله لارور کـه چې والـوزي

هوا بازي لکه د بازغـــــواړي

* * *

بیا مې مغزو کې څه غوغاخوره ده

غواړې چي مست او لیونې مي کړي

د کومــي مینـــــي او وفـا په خاطر

غواړې چي سوې سپیلنې مـــې کړي

* * *

ستـــورو تــه ګورم سترګکو نه وهې

دآسمـــان پیـــغله پــه ګډا ښکاري

ځمکـــې تـــه ګـورم چې نشه نشه ده

غرونه رغونه په موسکا ښکاري

* * *

آسمانه وایه څه زیري لري

دباد له غیږي نه پیغام راکه

زه دې قربان شم له درا نه سکوته

یو سکوت مات کړه ترې آرام راکه

* * *

ستا له درنې او له نا پایې فضا

ما ته ګونګې شا نتې آواز راځي راځي

ستا ددې مستو توپانو له څپو

یو نوي شور او نوي ساز راځي

* * *

آسمانه پوه مې کړه د خدای له پاره

ستا په ګونګې ژبه پوهېږمه نه

## ډالۍ

ارو ښاد اسحاق ننګیال

لږ راته وسپړه دهن غوټې

نږدې دي شونډو ته رسیږ مه نه

* * *

آسمان ولې راته حال نه وایې

چې خلک پاڅیدل وطن ویښ شو

ولې ناره ولې فریاد نه کوي

چې خزانې مړاوې ګلشن ویښ شو

* * *

ولې دانه وایې په چیغو چیغو

چې د ظلمت مانې نسکوره شوله

ولې دانه وایې په مستې ژبه

چې دعیشو نو دنیا توره شوله

* * *

ولې دانه وایې چې ونړیده

داد عمرونو د ظلمونو زندان

## ډالۍ

اروښاد اسحاق ننګيال

ولې دانه وايې چې و پرزيده

دبد مستيو اوبزمونو سلطان

* * *

آسمانه ووايه چې ما تې شولې

لاس او پښو نه دپيړيو کړې

وايه چې راغلې په مسکيو شونډو

دسرو زرمونو دبريو ډالۍ

* * *

آسمانه څار دې شم دروګر څمه

خلکو ته زيرې دبدلون ورکه

ټولې دنيا او دنيا والو لره

خبر زموږه د پاڅون ورکه

* * *

آسمان ويښ شه توپان وخوځوه

آوازه دې تندر ته دې زور ورکه

چا ته په قار شه چاته ومسيږه

خپلو ته شور دښنو ته ګور ورکه

بغلان

۹ / ۲ / ۵۷ ۱۳

# تا يادومه

ډير مې ياديږې په رب قسم دې

ستا نر مې نر مې خوږې خبرې

ډيرمې ياديږې په خوب او وينه

ستا پستې شونډې لکه شکرې

* * *

ښکلې بهار دې هر خوا ګلونه

ورو ورو خوځيږې، څانګې ښاخونه

په ګلو اورې دشبنم څاڅکې

په چکرو تې بيا مستې نجو نه

زانګو هوا کې اميل جوړ کړې

چوغکې ګرځې ډلې خيلو نه

مسته هواده مسته فيږا ده

له ګلو خيږې خوارږه عطرونه

میندو پلرو له لاسو نیولې

خپل نازولې تنکې بچو نه

زه غمو وړې

په حیرت تللې

( یوازې ناست یم تا یادومه ) ( ۱ )

یه زو یه زو یه ګلا لې زویه

زه به دې هیر یم که دې یادیږم

زه چې هر څو ځان مشغولومه

خو ته را یاد شې نو بیا ژړیږم

چې ستا په شانته کوم کو چنې وینم

زه لکه شمعه ورته ویلیږم

چې ستا د ځنو کارېه په زړه کړم

کله مو سکې شم کله غمیږم

که هر څو زړه ته ډبرې میدم

نه مې هیریږې که هم بیدیږم

زه غمو ړوې

په حیرت تللې

( یوازې ناست یم تا یادومه )

که هر څو مله مې وخواته راشې

رالره جوړ کړې تاوده بزمو نه

هر څو مې ښکلې که غيږ کې نيسې

څو په ماموښی جوړه تيو نه

که ځو يې لمس کړم غوښن ورنونه

هر څو که بزم د ځوانې تود شي

هر څو که تش کړم ميو خمونه

هر څو نشې مې له عقله خلاص کړې

هر څو مې مست کړې خواږه عشقونه

په رب قسم دې چې ته را ياد شې

په ما شي زهر واړه خوندونه

زه غموړې

په حيرت تللې

( يوازې ناست يم تا يادومه )

ورځ خو لا ښه وې په دنده بوخت يم

لعنت په شپې شه بده تيريږي

اوړم را اوړم قرار مې نه شي

بستر مې او ښکولا ندي ډوبيږي

خو که يو ځل مې پرېښاتې يو سې

له ځايه خيز کړم زړه مې درځيږي

وایمه نه چې (آرش) مې لوخ وي

وایمه نه چې ساړه بې کيږي

ها خوا او دې خوا ته مې لاس اوږد کړم

خو په بچې مې لاس نه لګيږي

له ويرې پاڅم يو ټکان و خورم

شپه مې همدا سې ټوله تيريږي

زه غمو وړې

په حيرت تللې

(يو ازې ناست يم تا يادومه)

جلال آباد

۱۳۶۱ / حوت / ۱۸

(۱) دلايق له يوه شعر څخه نقل شويدي

هغو ته چې ترخيص يې نه دې اخيستې او په دا وطلبانه توګه ځارندوې په ليکو کې پاتې دي.

# د انقلاب ساتونکي

ملـګرو ګـــوري دې خورو درو نه
د شــــاه زلميـــو تـــرانې راځې
ګورې چې وينې شول د همت بچوړې
دغرو له ځـو کـــو زمزمې راځې

* * *

ګورې چې وښو ريــــدل وخوځيدل
ګورې چې مستې شوې زمريانو ډلې
ګورې چې وا لوتل په هــسکو تــړو
دا دشا هينو او بـــازانــــو ډلې

* * *

ګورې له تيکو تورې ووتـــــلې
ګورې چې وبريښيده خړه فـــضا
ګورې چې وغوړيده و ټوکــيده
په غرورغونو کې موسکا موسکا

* * *

ګورې چې وراڼې شوي دويـــــنو لارې
ګورې چې زړه د ( پانګوال ) و چاودېده
ګوري چې هلته ارتجـــاع بـــوره شوه
ګورې چې دلته د ملت و رنګـــــيده

* * *

ګوري چې توري وريځې وتښتـــيدې
د آسمان پيغله په ګـــــدا راغــــله
ستورو ته و ګورې چې ونڅـــــيدل
د ځمکې شونډو ته خنـــدا راغــــله

* * *

ګورې چې بلې شولې ســري سکروټې
پکې ايرې شول د ډالـــرو بڅـــيان
ګورې زموږ د پيغلو اوښکو سين کې
ډوب شول لاهو شول وطنې پرنګيان

* * *

ګورې په وچو ګردو هــلو شونــډو
خوږه غوندې خندا راغــله راغــله
ګورې په سو يو کړيد لـــو زړګـــو

جذبه دمینې او وفـــا راغـــــله

* * *

ګورې په وچـــو ګـــردو هلو شوندو

خوږه خوږه غوندې خندا راغـــله راغله

ګورې په سویو کـــړیـــدلـــو زړګو

جذبه د میـــنې او وفــــا راغـــــله

* * *

ګورې ددې وطن ربښتـــینې بچـــیان

د خپلې خاورې سا تندوي شول که نه؟

ګړرې په خپله خوښه دا ننـــګیـــالې

چې داو طلب د څارندوی شول که نه؟

* * *

دغه اتل او سر ښندو نــــکې زلمې

ګورې هادې دانقلاب شـــول که نه؟

ګورې ددې وطن بـــا تـــوره زامـــن

حامې، حافظ د نوي باب شول که نه

۲۸ / ۳ / ۱۳۶۲

ثور انقلاب دلارې شهيدانو ته

# د وينو سرود

آسمانه ستا پـه لــــويـــه لـــــويـه دړه

وايه دا ســــــرې لمبې د اور ځــــه دي

داچې تا سو ځې درنـــــه زړه وبـــاسې

کړيکې د تندر لور پـــه لور ځـــه دې

* * *

دا جا دو ګر ماښام پـه څه مست شوي

چې د افق لــه شونـــډو رنګ اخلې

دا توپاني سيلې يـــاغــې دي ولې

چې بر او بحر نه قـــالنګ اخـــلې

* * *

ولې دوريځو شوي جامې بـــدلې

داخړې خړې ولې سرې ښـــکارې
دغه تور سرې د عمرو نو کونډې
لکه د ناوو پلو شې ښکــــارې

* * *

داد فلک له سرو خونــيو سترګو
ولې دو ويـــــنو فـــوارې اورې
دا دوزخې آسمان په څه ژړيږي
تړوتړې تړوتړې قطرې قطرې اورې

* * *

دغه دهسکو غرو رغو نوتل کې
ولې دا مـــرې اود آمــــو په سينو
داد هـــلمنــــد اود آمو په سينو
ولې داغــلې څپې ونڅــــيدې

* * *

دا ليونې برښنا په څه پړه کيږې

له قهره ډکـــــه ده او زور ښيې

ولې راباسي د او رو نــــو چړې

وريځې شړي توپان ته لورښيې

* * *

آسمانه ووا يه قربان دې شمــــه

دا ليو نې طبيعت ياغې دې ولې

لړ خو مې و سپړه دامړ اوى ولې

دا سرګردان جهان باغي دې ولې

* * *

خو.

زه دې لـــــه سوې در ديدلې زړه نه

داغــــلې غلې تـــــرانـــې اورم

ته چې مدام بـــولـــې دوينو سرو د

زه دې همد غــــلته نـــارې اورم

* * *

دا بريښنا نه ده چې رڼـــا خوروي

دا شفق نه دې چې ګلګون ښکارې

آسمان دادې ځوانيمرګـــې ويني

چي يې غوټيو کې ژوندون ښکاري

* * *

آسمانه وغـــــړوه ږ غـــــړوه

د لـــوی فتحو او رزمو سازو نه

تـــوپـــان ته ووايه چي ورپوي

د سرو قبـــرونو بخملې تو غونه

* * *

د ستا شفـــــــق به شهيد له وينو

رنګو نـــــه اخلې او ځليږي پسې

د ستـــــا شفق به د شهيد له وينو

رنګـــــو نه اخلې او ځليږي پسې

د ستا د تندر او ټوپان زړه کې به

د انقلاب و نــــه لويږي پسې

کابل

۱۸/ ۶ / ۱۳۶۳

# و پوښته آسمان نه

زه هغه زلمې یم چې له سرنه تیر یدلې شم
زه مې ککرې باندې میچنې ګرځولې شم
زه د ځان په وینو لوبیدلې لمبیدلې شم
زه تورو باروتو کې داور تخم کرلې شم
زه مې په منګولو کې اورونه اوبولې شم

وپوښته غیرت مې له آسمان او کهکشان ځینې
پورته له آسمان ځینې ښکته تول جهان ځنې

* * *

و پوښته آسمان نه چې یې څومره ازمویلې یم
څومره یې په تورو په ننګو نوکې لیدلې یم
څومره لکه تندر د دښمن په سر لویدلې یم
څومره لکه اوسپنه اورو نو کړولې یم
څومره سرو ګولو ته لکه غر هسې دریدلې یم
کو مې فلکې کړیکې له هوډه ګرځولې یم؟

زما په یوې چیغې اسرا فیل رالړزیدلې دي
زما په یوه قهر باندې تندر ریږدیدلې دي

* * *

و پوښته آسمان نه چې يې بل څوک خم ليدلې دي
کوم چې ياغې شوي سيلا وو نه مهارولې شي؟
يادو ينو سين کې لکه مست او توپانې ماهې
اړخ په اړخ را اوړي ګډيدلې لمبيدلې شي
داسې قيامتې لکه داور او د سيندو نو خداې
کوم چې دوزخو نه خورې سکروټې هضمولې شي
آيا بل به وي داسې انسان په انسانانو کې
داسې قهرمان د ټول جهان قهرمانانو کې؟

* * *

وپوښته آسمان نه ورته ووايه چې ووايې
دغه انسان څوک دي دا اتل او قهرمان چيرې
داد دنيا وا لو دنياوو د سرونو تاج
داد غيرتونو ، همتونو پهلوان چيرې
وپوښته آسمان نه دابه چيرې روزل شوي وي
داده ټټوبې دده نسل او نيا کان چيرې
دا هغه افغان دي چې يې ټول جهان کيسې کوي
څمکه پرې نازيږي د غيرت يې تما شې کوي

۱۳۶۲ / ۸ / ۱۹